مؤسسة العزائم خپرندویه
اداره يې وړاندې کوي

العزائم
مؤسسة العزائم
الإعلامية



# بیا اختر او بیا تکراري درواغ

## یو ځل بیا د ملا هیبت د تکراري درواغو شرعي ارزونه!

بسم الله الرحمن الرحيم

# بيا اختر او بيا تكراري دروغ

## يو ځل بيا د ملا هيبت د تكراري درواغو شرعي ارزونه!



مؤسسة العزائم الإعلامية

شوال-1445-

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله أما بعد:

د طالبانو نام نهاد امير هيبت الله اخوند په خپل اختريز پيغام کې يو ځل بيا همغه وعدې ، درواغ او تشــې باتې تکرار کړې ، کومې بې چې دوه کاله مخکې کړې وې او له هغې راوروســته يې په هرو ځو مياشــتو کې په دې خاطر همدا زړې کېســې کوي چې له يوه لورې خپلې دلې ته مورال ورکړي او بل لور ته د عامو مسلمانانو په سترګو کې خاورې وشيندي او د خپل نظام د مشــروعيت په اړه ډاډ او اطمينان ورکړي چې ټول ورسره د دوی دا تمثيلي او ډيزاين شـوې ســزاګانې د شرعي ســزاګانو په حيث ومني ،په دغه خبرو کې بې په ډير محتاطانه انداز خپلو نړيوالو تحالف کوونکو ته په اشــارې ځينې باتې او ګوتڅنډنې هم کړې دي، نو غواړو چې په دغه خبرو يې د شريعت له مخه لړه رڼا واچوو،د دې لپاره چې ناخبره مســلمانان د دې کرايې جګړه مار په دغه غولوونکو خبرو دوکه نشــي او بې لارې نشي، نو دا چې نوموړي په خپل بيان کې ډيرې تېر او پاتې خبرې کړې دي موږ به کوشــش وکړو چې په لنډه توګه يې ځينې مهم ټکې تاسې ته تشريح کړو باذن الله.

: اوله خبره يې دا کړې چې د اختر درې ورځې د خوشــالۍ ورځې دي،، مونږ وايو: وړوکی اختر خو يوه ورځ دی ټولو مســلمانانو ته د دې معالومات شــته او هيڅ داسې دليل مونږ ته معلوم نه دی چې په هغه کې دا يادونه شـوې وي چې وړوکی اختر درې ورځې دی بلکې د ترمذي او ابو داود په حديث کې صراحتاً راغلي دي د انس رضي الله عنه په روآيت سره وايې: قدم رسـول الله صلى الله عليه وســلم المدينة ولهم يومان يلعبون فيهما، فقال: قد أبدلكم الله ســبحانه وتعالى بهما خيرا منهما يوم الفطر والأضحى.

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې ته راغی او د دوی (انصارو) لپاره دوه ورځې وې چې په هغو کې به یې لوبې کولی (یعني خوشالي به یې کوله) نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی تاسو ته د دې دواړو ورځو په بدل کې نورې غوره ورځې درکړي دي چې د واړه او غټ اختر ورځې دي.

نو دا حدیث دلیل دی چې وړوکی او غـــټ اختر یوه ، یوه ورځ دي خو د غټ اختر سره بیا ایام التشــــریق د بل حدیث له وجې اضافه شوي دي او د غټ اختر په ورځو کې شـــمار شـــوي دي لکه فرمایې: یوم الفطر ویوم النحر وأیام التشـــریق عیدنا أهل الإسلام. رواه الترمذي وصححه. ژباړه: د واړه اختر، غټ اختر او د تشـریـق ورځې زمونږ لپاره د اختر ورځې دي ای مسلمانانو.

خو دا چې ته وړوکی اختر هم درې ورځو ته غځوې او وایې چې دا د اختر درې ورځې د خوشـالۍ ورځې دي نو دا سـتا په غټ جهل دلیل دی یو مسـلمان باید له دې بدیهي خبرې څخه هم ستا جهل درک کړي او ستا په راروانو خبرو دوکه نشـــي او دا څه معمولي خبره نه ده په دې بانـــدې ځینې شرعي احکام مرتب دي نو ځکه مو ورته اشاره وکړه.

: دویمه خبره یې دا کړې چې رســول الله صــلی الله علیه وســلم به د اختر په ورځ د دین د خدمت لپاره تشکیلات کول چې په دې سره یې جهادي تشکیلونو ته اشـاره کړې ده، نو سـتا په وینا چې نبي علیه السـلام تشـکیلات کړي دي تا کوم ځای ته خپل اخوندان تشکیل کړل؟

د غزې نا خبره خلک خو تاســې ته د مدد چیغې وهي ، تاســې کوم ځای کې د هغوی لورې ته تشـکیل وکړ چې دغه سـتا په اصـطلاح اسـتشـهادي کتیبې خو ورولیږې او د هغوی څخه دفاع وکړي، درواغ وایې هسې مستضعف او کمزوري

مسلمانان ځان ته پسخوئ نور خو د ایمان څرک درکې نه تر سترگو کیږي، چې عملي میدان کې څه وښـایې، بلکې مخکې به مو څـــه نا څه د دیموکراتیکو اصولو له مخې ځینې مظاهرې کولې، زنده اباد او مرده باد نعرې به مو د غزې د مســلمانانو په ملاتړ وهلې اوس خو مو هغه هم پریښـي دي ،شـاید چې امریکې دربانديې غوږ تاو کړی وي ،چې گوره گوزاره وکړئ او ډیر لــه ټاکلو خانو څخه پورته مه خیژئ ، ځکه ســتاســې ریموټ د امریکا په لاس کې دی د هغوی خـلاف نشئ کولی کنه بیا مو قطر کې خپلې استخباراتي هډې ته احضاروي.
همدا راز که جنگیالي دې په دې خبرو تیر باسـې چې غزې ته د رسـیدو لارې بندي دي ، نو دا تر څنگ پروت چین ته مو سر ورښــکاره کړئ ، دلته وگورئ چې همدا سـتاسـې د دوسـتانو له لورې په اشـغال شـوي شرقي ترکسـتان کې د ایغور د مســلمانانو څه حال دی ، هغوی سره کوم وحشـــت دی چې نه ترسره کیږي ، له میلونونو مسلمانانو څخه یې بچې جلا کړي تر څو یې په کمونستې مفکوره وروزي ، لـــه ټول اشغال شـوي شرقي ترکسـتان څخه یې ډله ایز زندان جوړ کړی چې په کې په میلونونو مسلمانې خویندې او نارینه د سختو شکنجو ، تعذیبونو او وحشتونو لاندې کړیږي ، د خاوند ، ورور او پلار له مخه یې ښځې ، لوڼې او میندې بې ابرو کیږي،ډله آیز جنـــسي تیري پرې کیږي ، له مدارسو او مساجدو یې د ځارویو طبیلې جوړې شوي دي .
خه که دا هم نشـــې کولی دغه نصــواري ملا اســـن خو پوهه کړه چې داســې د کمونسـتو چینایانو استقبال خو نه کوي ، خپل هغه حنفي خنزیر ته خو ووایه چې کمونســـتو ملحدو چینایانو ته خو میلمســـتیا نه ورنکوي ، هغه خو به دې اوریدلي وي چې په در دارالالمان کې خپلو چینایي کمونســتو ورونو ته وویل

چې مورږ د (ون چینا پالیسي ـ ) نه ملاتړ کوو ، پوهیږي ون چینا پالیسـی څخه ملاتړ څه مانا لري ،تا به ترینه یوه پوښتنه کړې وی چې  دا ون چینا پالیســي کومه پالیسي ده چې تاسې ترې ملاتړ کوئ ؟

دا تهٔ چې کوم تشــکیلات یادوې او خلکو ته په همدې خبرو په ســترګو کې شړې شــیندې نو تاسره د څه کمې دی ؟ دا د ښآرونو په عیاشــیو او خرمســتیو بوخت کشـــــرخیل دې همداسې په چین ورمرش کړه او که نه په خپلو خبرو کې د اختر په ورځ د جهاد د تشـــکیلونو خبره کوې او بیا په عمل کې د ټولو حربي کفارو د سرحداتو د ساتنې لپاره تشکیلونه استوې ، هوايي میدانونو ته د حربي کفارو د استقبال او قالینو هوارولو لپاره تشکیلونه استوې ، ددې لپاره تشکیلونه استوې چې د نړی لــــه لر ، بر څخه حربي کفار دلته د تفریح لپاره راشي او تاسـې ورته هر ډول زمینه برابره کړئ ، هر ډول میلمســتیاوې ورکړئ.

او یا ستاسو په نزد نن سبا کفارو ته روژه ماتی ورکول هم جهاد دی؟

بیا په خپلو خبرو کې وایې چې شــیطان ســتاســو په وحدت خفه کیږي، دا خبره صـحیح ده چې شــیطان او د هغې لښــکرې د مســلمانانو په وحدت خفه کیږي خو مونږ دې ته حیران یو چې امریکا، روس، چین ایران او نور طواغیت چې رؤوس الکفر او شـیطاني رژیمونه دي څنګه له تاسـو خوشاله دي، سـتاسو په بقا خوشـاله دي، سـتاسـو په اړه اطمیناني دي او وخت په وخت سـتاسـو د حکومت سـتاینه کوي، تاسـو سره روابط برقرار سـاتي او مسـتقل نماینده ګان یې درته معریفي کړي دي، دا هم په دې دلیل دی، چې تاسـو د شـیطاني لښـکر یوه برخه یاسـت نو ځکه درنه د نړی لر او بر شـیطاني رژیمونه خوشـاله دي او هیڅ ډار له تاسو نه محسوسوي، نبي علیه السلام سره د ژوند تر پایې د کفارو

او مشـــــرکینو له خوا دښـــمني شـوې خو تاسـو سره د کفارو دښـمني پای ته رسیدلې او ټول کفار درته د دوست په نظر ګوري او تاسې هم ورته د دوستانو خطاب کوئ په هغوی بریدونه غندئ ، هغوې سره غمرازي کوئ دښـــمن يي خپل دښمن ګڼئ چې دا راز په څه کې خوندي دی؟

معلومه شوه چې تاسو د رسول الله صلى الله عليه وسلم لاره پریښي ده، په حدیث د بخاري کې راغلي دي نبي علیه الســلام ته ورقه بن نوفل په ابتدا د وحې کې ویلي وو: لَمْ يَأْتِ رَجُلٌ قَطُّ بِمِثْلِ ما جِئْتَ به إلَّا عُودِيَ، ژباړه: ستا په څېر پیغام چې هر چا راوړی دی نو دښـــمني ورسره شــوې ده، خو نن د طالب ملیشو سره د کفارو دښـمني پای مومي معلومه شوه چې دوی په اسلام برابر نه دي.

بیا وایې د بدو خلکو سره خپل تعلق قطع کړئ او استدلال لـــه دې آیت څخه کوي چې الله تعالی فرمايي: وَلَا تَرْكَنُوٓا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّـــكُمُ النَّارُ ، ژباړه: تاسو مه مایله کیږئ هغو کسانو ته چې ظالمان دي، که نه د جهنم اور به درته ورسیږي، او وایي چې: وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ. ژباړه: د رښتنو خلکو ملتیا وکړئ، د صادقینو ملتیا وکړئ نو دا آیتونه یې ډیر ناشنا ویلي دي او ډیر غټ جرأت يې کړی دی، دا آیتونه لږ واضـــحه کوو چې په دې کې څه معنا پرته ده ایا دا د هیبتوف د مرتدې ډلې او د هغوی د عقایدو او کړنو تائید کوي او که تردید یې کوي، بیرته د همغوی د تکفیر لپاره دلیل دي، نو اول آیت ته راځو: الله تعالی فرمايي: وَلَا تَرْكَنُوٓا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ. [سُـــورَةُ هُـود : 113]

ژباړه: د دغو ظالمانو لوري ته يو بخرى مه کږېږئ، که نه نو دوزخ به مو ونغاړي،

او تاسې به کوم داسې دوست او سرپرست ونه مومئ، چې د الله تعالی څخه مو وژغورلای شي او لـه هيڅ يو ځای څخه به تاسې ته مرسته ونه رسيږي.

د ولا ترکنوا نهي تفسـير: ابن عباس رضي الله عنهما نه د دغه نهي په اړه دوه قولـه نقل دي يو دا چې: النهي عن الركون إلى أهل الشرك. ژباړه: مشرکينو ته د ميلان کولو نه منع ده.

دويم: النهي عن مداهنة أهل الظلم، ژباړه: د ظالمانو سره لـه نرمۍ کولو څخه منعه ده.

د ابو العاليه نه نقل دي: لا ترضـوا أعمالهم. ژباړه: تاسـو د دوی اعمال مه خوښوئ.

د قتادة نه نقل دي: لا تلحقوا بالشـــرك، وهو الذي خرجتم منه. ژباړه: شرک پسې مه پيوسته کيږئ او دا هغه دی چې تاسو ترې وتلي ياست.

شيخ المفسرين ابن جرير الطبري وايې: ولا تميلوا، أيها الناس، إلى قول هؤلاء الذين كفروا بالله، فتقبلوا منهم، وترضـوا أعمالهم. ژباړه: ای خلکو تاسـو مه کږيږئ د دغه خلکو وينا ته چې په الله تعالی يې کفر کړی دی چې لـه دوی څخه يې قبول کړئ او په اعمالو يې خوښ شئ.

ابن کثير د دې په تعقيب کې وايي: وهذا القول حسـن، أي: لا تسـتعينوا بالظلمة، فتكونوا كأنكم قد رضيتم بصنيعهم. ژباړه: او دا ښايسته قول دی يعني تاسو د ظالمانو نه کومک مه اخلئ نو شئ به تاسې ګويا چې تاسـو د هغوی په کار خوښ ياست.

دا ټول اقوال يو بل ته نيژدې دي چې د کفارو او ظالمانو د ملاتړ او د هغوی په کړنو لـه رضايت څخه مسلمانان منعه کوي، بيا د "ظلموا" نه په تعين سره

ځوک مراد دي نو دې کې د مفســـرینو دوه قوله دي یو دا چې مشـــرکین ترې مراد دي او دویم دا چې ټول ظالمان ترې مراد دي که مشـــــرکان وي او که په مسلمانانو کې ځوک ظالم وي؛ د هر ډول ملاتړ نه يې اجتناب شوی دی چې دا قول قرطبي او امام شوکاني راجح کړی دی.

په آیت کې رکون لفظ راغلی دی میلان ته وایې نو چې یوازې میلان کول او لږ ورکړیدلو نه منعه راغله او دغه سخته نتیجـــه پرې مرتب شوه نو د هغه چا به څه حال وي چې د کفارو او ظالمانو سره په تحالف کې واقع شي، د هغوی نیـابتي جګړه پـه غـاړه واخلي او د هغوی د ګټو لپـاره جنګیږي؟! ظـالمـانو تـه دوســـتان ووایي او د الله او د هغه رسـول دشـمنانو(روافضـو) سره اســتخباراتي معلومات شریک کړي دا خو به خامخا په دغه وعید کې داخل وي.

نو اوس د دې آیت سره تاســو د هیبتوف د لښــکر کړنې او عقاید پرتله کړئ د نورو آیتونو ذکر کولو پرته همدا یو آیت د دوی په کفر واضــح دلیل دی او هغه داســې چې په دې آیت کې الله تعالی ظالمانو ته یوازې لــــه میلان څخه منعه کړې ظالمانو نه مراد هغه خلک دي چې په ظلم اکبر کې اخته دي ،چې شرک، کفر او ارتـداد دی؛ دوی ورتـه څومره میلان لــــري ،میلان خو پریږده څومره ملاتړې يې کوي، د مســـلمانانو په خلاف يې ورسره تحالف کړی دی، د هغوی غیر شرعي میثاقونو او پریکړو ته څومره ژمن دي، د هغوی ګټو ته څومره ژمن دي، د هغوی د مخالفینو څومره سرســـخت دښـــمنان دي، دا مونږ او تاســـو ته د دوی لــــه عمل څخه په ډاګه دي، دغه اسلام ته منسوب طواغیت که ځوک ورته کافران نــــه وایي نو د ظلم په مرتبه کې خو په ښکاره توګه واقع دي ،چې

له دې ښخه يو غالي مرجئې هم انكار نشـــــي كولى؛ د طالب مليشـو ملاتړ، وفاداري، دوستي د دغه طواغيتو سره په كومه اندازه كې ده؟

مسـلمانان حربي كفارو سره د طالب مليښـو راشـه ، درشـه ، دوسـتي ، د هغوى اسـتقبال ، هغوى ته قاليني هوارول ، هغوى ته د امنيت سـاتنې ډاډ وركول ، هغوى ښخه عملاً مسـلح مخكې وروسـته تلل او له بريدونو يې سـاتل ، د هغوى په مردارانو وير كول ، په هغوى بريـدونـه غنـدل ، هغوى سره غمرازي كول ، د هغوى دښمن خپل دښمن ګڼل ، هغوى سره د بربنډو انجونو په ملتيا لـــه خندا ډک مجلسونه ، خوراكونه او بنډارونه كول.. دا به په څه كې راځي ؟

دا به نو ميلان نه وي ؟

او كه نه دا زموږ خبرې تشې دعوې دي ؟

داسـې خو هم نه ده دا هر څه خو خلک د سر په سـترګو هره ورځ ننداره كوي ، يعني هيڅ داســې كافر نشــته چې دوى ورته د حقيقي دښــمن په نظر ګوري بلكې هر يو ته يې د دوســتى، امن او د صــلحې لاس ور اوږد كړى دى، دا خبره لـــه هيچا پټه نه ده، د هغوى له عاداتو او فرهنګ ښخه متاثره دي، او د هغوى لـــه ثقافت ښخه متاثره دي، د هغوى له قانون نه متاثره دي، مسـلمانانو ورونو تاسو د دوى كړنو ته لږ د تنقيد په نظر وګورئ تاسو ته به د دې خبرو حقيقت په ډاګه شي، همداراز كه عقايدو ته يې كتنه وشي نو هم د مكې د مشـركانو نه ډير كم نه دي، زيارت پرسـتي، قبرپرسـتي د دوى د دين خلاصـه ده، د زيارتونو عبادت او ابادول، د شركي مراكزو ساتنه د دوى وظيفه ده. تاسـو نه ګورئ ورځ په ورځ په جماعتونو او خانقاګانو كې د دوى شركي بنډارونه زياتيږي او د دين مامد صـوفي او د نورو بلاعمه وو په مشرـۍ دغه عقيده ډيره په تيزۍ

افغانستان کې خوريزې، نو اکبر ظلم او اکبر ظالمانو ته يې په ښکاره توګه غاړه ورکړې ده نو په همدې آيت دوی مرتد شوي دي بايد چې هيبة الله اخوند او د هغه لښکري د دغه آيت لـــه مصداق څخه خپل ځان وباسي او له خپل کفر او شرک څخه الله ته توبه وباسي، دا ستاسې د رکون په نتيجه کې نن ډرونونه په مسـلمانانو پسـې ګرځي د افغانسـتان غرونه او سـمې پسـې لټوي، د دې نه بل واضـح دليل سـتاسـې په کفر څه کيدلی شي، چې امريکا په ډرون سره هم ستاسو ملاتړ کوي، په ډالري کڅوړو يې هم کوي .

دويم آيت يې چې ذکر کړی دی هغه دادی : الله تعالی فرمايي: **يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ**. ژباړه: ای مؤمنانو د الله نه ويرېږئ او د رېښتنو خلکو ملتيا وکړئ. صادقين څوک دي؟ ايا د هيبتوف ملګري د دې آيت مصـداق دي چې مسـلمانان يې ملتيا وکړي او که د دې ضـد دي؟ نو د صادقينو تفسير ته راځو: القران يفسر بعضه بعضا(قران ځينې د ځينو تفسير کوي) قاعدې په اساس د دې په تفسير کې بل آيت راوړو چې په هغه کې الله تعالی فرمايي: **إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللهِ أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ** [سُورَةُ الحُجرَات : 15]

ژباړه: په حقيقت کې خو مؤمنان هغه دي چې پر الله او د هغه پر پيغمبر يې ايمان راوړ، بيا هغوی څه شـك ونکړ او په خپلو مالونو او سرونو سره يې د الله په لاره کې جهاد وکړ، همغوی رښتيني خلك دي.

او په بل آيت کې فرمايي:

**لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِينَ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيٰرِهِمْ وَأَمْوٰلِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوٰنًا وَيَنصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ۚ أُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُونَ** [سُورَةُ الحَشر 8] ژباړه: (همداراز دغه مال) د هغو غريبو مهاجرينو لپاره دى، چې له خپلو كورونو او جايدادونو څخه ايستل شويدي، دوى د الله فضل او د هغه رضاء غواړي او د الله او د هغه د پيغمبر بري ته ملاتړلي اوسيږي، همدغه رښتيني خلك دي.

نو په دې آيتونو كې د صادقينو يو څو صفات ښودل شوي دي چې په دې ډول دي:

**اول صفت:** په الله او رسول به ايمان لري، **دويم:** يقين به لري هيڅ شک به نه لري، **دريم**: د الله په لار كې به يې د الله د رضا لپاره هجرت كړى وي، **څلورم**: د الله په لار كې به جنګيږي، د الله تعالى او د الله د رسول د دين مدد به كوي، بيا اخري نتيجه يې همدا ده چې دغه خلک صادقين دي ريښتني مؤمنان دي، الله تعالى مونږ د همدوى ملتيا ته رابللي يو، او د دې نه سوا د نورو خلكو د ملتيا نه يې منعه كړي يو په ولا تركنوا الى الذين ظلموا آيت سره چې مخكې وضاحت وشو.

نو اوس تاسو دې آيت كې ژور فكر وكړئ ايا طالبان د دې آيت مصداق دي چې ملتيا يې وشي، او كه د خلافت مجاهدين؟

نو اول صفت ته راځو چې په الله او رسول ايمان دى، نو دوى د الله تعالى په اړه هم ځيني فاسده عقايد لري، د اهل السنة والجماعة د عقيدې خلاف دي، ډيرى په كې د وحدة الوجود او حلول عقيده لري، او د الله تعالى له ځينو ثابتو صفاتو څخه منكر دي چې د دې په اړه وضاحت نه كوو مسئله به اوږده شي

په اشاره بسنه کوو، د رسول الله صلى الله عليه وسلم په اړه يې هم ايمان د اهل السنة والجماعه د ايمان په څېر نه دی، د هغه د صحيح ثابتو طريقو احترام او توقير نه کوي، بلکې د ډيرى سنتو يې کلکه دښمني کوي، احاديث مبارکه يې په مختلفو بې ځايه تاويلاتو ردوي، ړوند تقليد ته په اتباع ترجيح ورکوي، او د دين ډيرى برخه يې په کېسو او خوبونو کې رانغښتى ده، تاسو د دوى تصريحات په دې اړه واورئ نو د ايمان په حقيقت به يې پوهه شئ.

دويم صفت: ثم لم يرتابوا؛ يقين به لري چې د شک منافي دی، او په دې سره د کلمې شرطونه ثابتيږي چې يو شرط په دې آيت کې ذکر دی او ځينې نور يې په نورو آيتونو او احاديثو کې ذکر دي، علماوو اته شرطونه مستنبط کړي دي: علم، يقين، اخلاص، صدق، محبت، انقياد، قبول، کفر بالطاغوت.

نو د دوى په يقين هم باور نشي کيدلى ځکه چې د کلمې د دغه شرطونو خلاف په کې ښکاره دی، د الله او د شريعت په اړه سالم علم نه لري، د هغه علم خلاف دی، کوم چې مونږ ته له سلفو صالحينو څخه پاتې دی، اخلاص چې د شرک منافي دی ،د دې کوم څرک په کې نه ښکاري ،بلکې د شرک او مشرکانو تائيد يې واضح دی، همداراز انقياد، قبول او کفر باالطاغوت شرطونه هم په دوى کې نه ليدل کيږي ،بلکې د شريعت د احکامو رد، د هغې پريښودل او معطل کول او هم د کفارو او طواغيتو نه بيزاري نه کول د دوى ښکاره نښې دي.

دريم: د الله په لار کې به يې د الله د رضا لپاره هجرت کړى وي، نو دا صفت چې يو کامل صفت دی له مسلمان څخه د دې تقاضا کوي چې مهاجر شي يا هم انصار شي او که دا هيڅ هم نشي کولاې ، نو کمه اندازه يې دا ده چې

مخالفت خو یې ونکړي دا د شریعت عام نصـــوص مونږ ته وایي، خو طالب ملیشـــې یوازې دا نه چې هجرت یې نه دی کړی ، بلکې انصـــار هم نه دي، په مهاجرینو یې پابندي لګولې او نړیوالو کفارو ته یې د دې داډ ورکړی چې زمونږ هیواد به هیڅ ترهګر(مجاهد) ته ځای ورنکړي او نه به د چا پناه ګاه وګرځي، تر دې چې ځینې چې د دوی تائید هم کوي لکه نام نهاده القاعده او یا د پاکســـتاني نیابتي تحریک غړي هم دوی ورځ په ورځ کفارو او طواغیتو ته په نښه کوي، د هوایي بمبارونو او د زمیني بمونو او بریدونو ښکار کوي یې، د مهاجرینو په سر یې د چینایي کمونســـتانو او د نړۍ د نورو کفارو سره ډیره غټه معامله کړې چې دا هم لـه چا پټه نه ده، مهاجرینو سره چې دوی په ښکاره توګه کوم سلوک کړی هغه هم له چا پټ نه دی.

څلورم صـفت: د الله په لار کې به جنګیږي د الله او د رسـول صـلی الله علیه وســلم د دین مدد به کوي، نو اوس که دې صـــفت کې فکر وکړو نو دا هم په طالـب ملیشو کې هیڅ نه لیدل کیږي، بلکې د دې خلاف لیدل کیږي او هغه داســې چې دوی جهاد ته د پای ټکی ایښـــی دی، د ټولو کفارو سره یې په یو وخت دغه وعده کړې او مؤبده وعده یې کړې چې هیڅ تعرضي جهاد به نه کوو، نو که څه هم د دوی د دغه فاسده عقایدو په شتون کې د دوی یو عمل هم د قبلیدو وړ نه دی ،خو د دې له پاســـه یې ښـــه په ډاګه د دغه حکم د تعطیل لپاره کفارو ته پوره اطمینان ورکړی دی ، بلکې د دوی جنګ اوس د طاغوت په لار کې دی، د شـیطاني رژیمونو راضي کولو لپاره دی، دوی د اسلامي دولت په خلاف د نړۍ او د سـیمې له کفارو سره په ښکاره توګه همکار دي، هغوی ته امنیتي راپورونه ورکوي او جاسوسي ورته کوي،د امریکایانو دا ډرونونه خو شړ

نه ګرځي، دا چې ګرځي دا د دوی د اشارې په تمه ګرځي چې دوی د مجاهدینو په اړه معلومات ورکړي،او هغوی یې کشف کړي نو یا پرې زمیني حمله د طالبانو له لورې وکړي او یا پرې هوایي برید وکړي که چیرې طالبان ترې عاجز وي.

او دا چې هیبتوف په خپل بیان کې په تکراري توګه د دروغو یادونه کړې نو دا هسې د مسلمانانو په سترګو کې شړې اچوي، په درون خو دا داده دی که پرون یې ورله کوم کس بمبار کړی هم وي نو شاید چې داسې کسان یې ورله هدف کړی وي چې کفارو به په کې خپلې ګټې نه لیدلې او نن خو سراسر دوی د کفارو ګټو لپاره کار کوي ، نو هیڅکله یې نه بمباروي، او هر چې د الله او د رسول صلی الله علیه وسلم د دین مدد دی نو هغه خو هیڅکله نه کوي بلکې د دې په ځای د شرکي معبودونو او د بهرني او د داخلي مشرکانو مدد کوي، د روافضو حمآیت، د سیکولرستانو حمآیت او د شرکي تصوف په افکارو د مبتلا خلکو حمآیت کوي او هم یې د سنتو دښمني، او د شرعي محمدي نظام دښمني یې له هیچا پټه نه ده، نو له دې وجې دا ویلی شو چې دا خلک په شرعي معنا صادقین نه دي ،بلکې غټ کاذبین او غټ ظالمین دي، د صادقینو په طرف هم نه دي ورغلي، نو چې څوک یې په بې ځایه دعوو دوکه نشئ، ځان ترې وساتئ، په همدغه آیت عمل وکړئ چې الله تعالی فرمایي: **وَلَا تَرْكَنُوٓا إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّار،** دا په ظلم اکبر کې اخته دي چې عبارت دی له کفر شرک او بدعت څخه، نو دوی ډیر مستحق دي چې د دغه آیت په حکم کې داخل شي او کلک اجتناب ورڅخه وشي، هیڅ میلان ورته ونشي، د هر ډول همکاری او ملاتړ څخه یې اجتناب وشي.

بیا یې د سختۍ او د راحت مثال ورکړی نو شل کاله یې د سختۍ ښودلې دي ،بیا وایې چې صبر او استقامت مو وکړ، قتل او د جنګ سختۍ مو برداشت کړې، نو نتیجه کې سلطنت لاس ته راغی دا یې د خبرې حاصل دی، مونږ وایو چې تا کومه سختي تیره کړې نو د همدغه سلطنت لپاره دې تېره کړې چې اوس دې په نتیجه کې هر ډول بې غیرتي منلې او د کفارو تجاوز دې منلی، او دغه کومه سختي چې ته یادوې نو دا هم اصل کې د نړیوالو ځینې اصولو مراعات نه کولو په نتیجه کې رامنځته شوې وه، کله چې دې هغه اصول ورسره ومنل سختي په دنیایي راحت بدله شوه، اوس لاسونه مړې چې ولې به مو مخکې دا فکر نه کولی چې دومره مو ځان تکلیف کړ.

تا خو د کفارو سره په استعمار الحمایه امضاء کړې ده، دا دې ورسره منلې دي، چې د هغوی ګټې به خوندي وي، د هغوی امنیت به خوندي وي او د افغانستان نه به ورته هیڅ خطر متوجې نه وي، په دې باندې ستاسو خپل اقرارات دلیل دی، چې نړیوالو صلیبي او کمونستو کفارو ته یې هر وخت زمزمه کوئ چې د افغانستان له خوا به ټولو هیوادونو ته په شمول د امریکا هیڅ تهدید او خطر متوجې نه وي، پر ځای د دې چې افغانستان د مسلمانانو کور دی؛ کفار ترې د یوې میاشتې په مسافې لرې هم ډار محسوس کړي تاسې یې ډار په اطمینان بدلوئ نو همدا استعمار الحمایه ده چې تاسو ورسره لاسلیک کړې، او دا هیڅ ازادي نه ده چې هیبتوف د مسلمانانو غولولو لپاره شکرونه وباسي او دې ته د استقلال او د ژوند نوم ورکوي، له دغه ژونده خو تا ته سل واره مرګ غوره دی چې د سلطنت په مقابل کې دې هر ډول بې غیرتي قبوله کړې، د اسلام او د مسلمانانو سره جفا او دښمني دې قبوله کړې او د استعمار الحمایه تړون دد

لاسلیک له وجهې نن در باندې په زور امریکا خپل امنیت ساتي او لکه سپیان یې د افغانستان په حدودو کې اچه ولي یاست چې سوګ امریکا ته خطر پېښ نکړي.

او بیا یې خپلو ملیشو ته تحریض ورکړی او ویلي دي چې دغسې استشهادي وکړئ او قرباني ورکړئ لکه څنګه چې مو پرون ورکوله، پام چې کمربند مات نه کړئ، او شهیدان خو د تاریخ ستوري دي.. مونږ وایو چې دا خبره صحیح ده شـــهیدان د تاریخ ســـتوري دي خو چې د الله تعالی په لاره کې جنګیدلي وي ،نیت یې خالص وي ، منهج یې صـــفا وي دا نه چې د طاغوت په لار کې د امریکا، روس، چین او د هغوی د متحدینو په لاره کې د وطنیت او قومیت او نورو ګنده عقایدو په اساس جنګیدلي وي، دا ستا ملیشې خو اوس سراسر د الله له لارې خلاف دي، د هغه چا مړو ته به شـهیدان ویل بې انصافي وي چې ویني د حربي کافر د وینو سره شریکې بهیږي، د کابل میدان هوائ برید رایاد کړئ، د روس په سفارت برید رایاد کړئ ،د چینایي کمونستانو په هوټل برید رایاد کړئ ،د روافضــو د حســـینیو بریدونه رایاد کړئ، د هندوانو د ګورداورې برید رایاد کړئ او دا لړی همداسې دوام لري؛ ستاسې د څومره ملیشو وینه په کې د محاربو اصلي کافرو او د مرتدینو د وینې سره شریکه تویه شولـــه، نو که ته شــهید یې بیا خو دغه صـــلیبیانو، کمونســتانو، هندوانو روافضـــو ته هم شهیدان وایاســت، العیاذ بالله، ځکه چې د یو بل ردء او مباشرین وئ، نو حکم د ردء او د مباشر خو یو وي په ثواب او په عقاب کې، خو دغه کمونســـتانو، صـــلیبیانو، هندوانو او روافضـــو ته چې شـــهیدان ویل محال دي ،نو تا ته هم د شهید لقب درکول محال دي، دا خبره مونږ په یقین سره کوو شک په کې نه لرو

او هر چې د استشهاد او قربانۍ او د کمر بند نه ماتولو خبره ده نو دا کمر بند تاسو د چا په مقابل کې تېنګ کړی دی، پاکستان طاغوتي حکومت خو بې له ځنډ او خنډ د هیواد په هر ګوډ کې مداخله کولی شي دا خو ټولو مسلمانانو ته ثابته شوه، او همداسې ایران او نور، نو ستا کمربند د چا سره دی چې خپلې مرتدې ملیشې د استشهادي په نوم ورته تیاروې، دا هسې یوه دوکه ده چې ته یې مسلمانانو ته ورکوې هیڅ حقیقت نه لري، او که حقیقت یې لرلی نو تا به د پاکستان طاغوتي حکومت نه د بار بار تجاوزاتو غچ اخستی وی، خو داسې نه ده بلکې ته په دغه خبرو سره خپلې ملیشې د اسلامي دولت مجاهدینو مقابلې ته هڅوې او د خپلو ملیشو اخرې خاتمه خرابوې، ځکه ستا د اسلامي دولت مجاهدینو نه پرته بل رقیب نشته که وې په نښه یې کړه، نو دا خبره دې هم بې ځای ده چې غرب تهٔ او ځینې پخواني خفه شوېو سیکولرستانو ته په اشارې داسې خبره کوې او وایې: "زمونږ په مقابل کې دښمن تبلیغات کوي" زاړه سیکولرستان خو ټول ستا په حکومت کې د مخکې په څیر وظیفې اجراء کوي او غرب خو ستا په ګټه خبره کوي، ستا د حکومت تائید کوي، تا ته یې د دوستۍ لاس درکړی، که دښمن یې وی نو بیا یې درته ډالرې رالیږلې؟ نور یې هم ځان ته قوي کولې؟ دا خو ډیره د عقل نه لرې خبره ده، هو! کله نا کله چې کومه خبره کوي نو هغه د اندیښنې په درجه کې کوي، په هغه وخت کې کوي چې کله د اسلامي دولت نه ورته خطره ډیره شي نو بیا یو څه ووایې دې لپاره چې تاسو خپلې درسپارل شوې وظیفې ته ښه متوجې کړي ،چې سستې او غفلت دربانديې غلبه ونکړي او د اسلامي دولت د زمرو غشي د تاسې نه سرګیر نشي امریکا ته تجاوز ونکړي لکه څنګه چې بې

د روس کمونستې هیواد ته تجاوز وکړ، او کومې خبرې د تعلیم او نورې چې دي نو هغه داسې خبرې دي چې هغوی ته کوم زیان نه رسوي هغه خبرې د هغوی په امنیت کې کوم اخلال نه رامنځته کوي که وشي خو ډیر به خوشاله شي که ونشي هم څه باک نه لري هغوی ستا د جینکو تعلیم یا ستا د بشر حقونو ته دومره تږي نه دي که وی نو تر اوسه به یې درته کوم ځای کې عملي تنبیه درکړې وی، خو بالعکس د هغوی ډرون ستاسو د حفاظت لپاره ستاسو په سرونو گرځي او کله چې په تاسو د حملې خطره ډیره شي نو بیا خو ستاسو په دفترونو داسې گرځي لکه ریموټ چې ستاسو په لاس کې وي او دا خبره خو دې ډیره بې ځایه ده چې خپلو ملیشو ته په خطاب کې وایې: "پرون یې تاسو د بمانو په مور ویشتلی یاست " دا ستا ملیشې یې کوم ځای کې د بمانو په مور ویشتلي دي؟ ته خو ډیر نا خبره یې او یا هم غټ درواغجن یې لکه څنگه چې مو مخکې وویله، د بمانو مور خو یې د ننگرهار سپین غر ولسوالۍ مامند دره کې د اسلامي دولت په تمکین گوزار کړې ده چې همدغه یوه گولۍ ستا بادارانو استعمال کړې نوره یې د بمانو مور په نوم یوه هم نه ده استعمال کړې او دا مهال اسلامي دولت مجاهدین هلته حاکم ول چې یو طرفته امریکا وه او بل طرفته ستا ملیشې وې چې کله ورته جنگ سخت شو نو د بمانو مور یې گوزار کړه چې الحمدلله هیڅ فایده یې ورته ونکړه او جنگ بیا هم څو کاله دوام ولرلو، چې بالآخره د دغه بمانو مور په شمول ډرونونو، جیټ بمباریو او د ډول ډول کروزونو په ملتیا تاسو پر مختگ وکړ او دغه ساحه مو د خپلو نجسو پښو لاندې راوستله او الله تعالی غوښتل چې د جنگ نقشه بدله کړي او نوره یې هم سخته کړي او ستاسو د خوبونو ځای ته یې ورسوي نو مجاهدین یې د

هغه ساحو ته لرې کړل، هماغه مجاهدین دي چې اوس ترې ته په خپل دفتر او پر امنه ســاحو کې په ویره او لړزان یې، الحمد لله. جومات کې هم ځان ته ټوپکماران ودروې او په بیت الخلاء کې هم، او دا ویره به دې وخت په وخت نوره هم زیاتیږي ان شاء الله، دا د عقیدې جنګ دی هسې د ماشومانو لوبې نه دي، ســتا تاریخ معلوم دی کوم وخت چې دربانديې امریکا حمله وکړه ســتا اخوندانو بیا سمې او غرونه پناه کول پاکستان ته په منډو تښتیدل، شا ته یې نه کتل یوه میاشــت یې هم د هغه کروزنو او بمباریو مقابله ونکړای شــوه ،د کومو چې اســلامي خلافت پنځه کاله وکړه په دې تاریخ ګواه دی، د عربو مجاهدینو سره ستاسو د جفا تاریخ پروت دی چې دغه ظالمانو ته مو پریښودل او تاسو ترې پاکســتان ته وتښتیدئ، نو بې ځایه باتې مکوه خپل تاریخ ولوله بیا خبره کوه.

نو دا چې بیا وروســته ورسره ســتا کور بیرته جوړ شــو او دغه ډرون او جیټ بیرته ســتا ملګري شــول او د هغوی له خوا درته د کابل ګدۍ وســپارل شــوه نو اوس دا خبره ډیره په تاکید سره مکوه چې" افغانســتان کې اسلامي نظام راغلی دی هیڅ عیب په کې نشــته د الله په نزد بانديې" ســتا نظام د عیبونو ډک دی اســلامي نظام خو د کفارو او مرتدینو سره په برائت بنا وي، ایا تا برائت کړی دی، د کوم کافر نه دې کړی دی؟ هیڅ بیلګه نشــې ښــودلی، اســلامي نظام د شریعت په حاکمیت بنا وي، تا کوم ځای کې شریعت حاکم کړی دی، چې بیا لا داســې ټینګار کوې چې ګوره زه دا کوم حدود چې نافذوم دا د الله له طرفه نافذوم ، رجم کوم ، لاس پرې کوم نومجبوره مکلف یم بله چاره مې نشــته دا زما عقیده ده باید چې کفار یې راسره ومني، درواغجنه! له کله نه چې تاته د

کابل گدی سـپارل شـوي ده ته یو د رجم یو د غله څخه د لاس قطعه کولو حد راوښـایه ، اوس په دې طریقه ته خپلو ډیزاین شـوو سـزاگانو ته شرعي نوم ورکوې څه فکر کوې تر څو به خلک په دې تشو باتو تیر باسې ، تا خو په همغه لومړي کال همدا خبرې وکړې ، چې شریعت به سـل په سـلـه حاکموم ، هغه حاکم شریعت دې کومه دی ، محصـن زانیان د رجم په ځاې په ۳۹ دورو وهې ، لــه غله څخه د لاس قطعه کولو په ځاې لکه یهود ویښـته قعطعه کوې او مخ ورتوروې ، لواطت کاران هم نهه دیرش دورې وهې ، سـاحران هم باید قتل شي خو ته یی په توبه بښې یا د بند سزا ورکوې ، ستا همدا تکراري باتې خو خلکو په ځلونو واوریدلې عمل کې یي وروښـایه ، که دومره نر یي له خپلو چارواکو زانیانو ، لوطیانو ، غلو او نورو مفسـدینو څخه شروع راوکړه ، تا په خپل کوم چارواکي د الله حدود تطبیق کړل ؟

موږ یي کوم یو درته یاد کړو ؟

که د حدودو تطبیق شروع شي لس طالبان په هم پاتې نشـــــي ټول به د قتل مستحق وگرځي.

د کابل د بریښنا د رئس او د کندهار د ملا حقبین په شمول ستاسې په لسگونو لواطت کاران درپاد کړو چې د جرم ویډیوي کلیپونه یي رسـنیز شـول ، که د بدخشـان د قاري قدیر ، د کندوز د ملا امان ، د تخار د نصـــــرالله حذیفه ، د خوست د قاري سعید په شمول نور په سلگونه زانیان چارواکي درپاد کړو چې پرته لـــه کومې سـزا ورکولو سرې سـترگې اذاد گرځي، څه فکر کوې سـتا په تکراري باتو به نور عام مسلمانان هم سـتاسـې د مهار شـویو ملېشـو په څېر خطا وځي ؟

ایا دا عام مسلمانان به ستا دا تکراري درواغ او ستاسې عمل نه ویني ،دوی پوهیږي چې ته په څو میاشتو کې یو ځل همدا درواغ په کوم هدف یو ځل ضرور تکراروې : په دې خاطر چې ځان د حقیقي اسلامي نظام حاکموونکی وښایې .

: ددې لپاره چې ځان د کفارو دښمن وښایې او په دې تشو درواغجنو خبرو د خلکو څخه د لمر په څېر ځلیدونکی دا حقیقت پټ کړې چې ته د حربي کفارو ساتونکی یی ، ته دا توانایي نه لرې چې خلکو ته په سترګو پټی او په غوږونو کې مالوچ ورکیږدې ترڅو پرې کفارو سره ستاسې دا مسته یارانه ونه ویني او په غوږونو حربي کفارو سره ستاسې د دوستی دا ټیپې او سندرې او هغوی سره ستاسې د خواخوږي او غمرازی مرثیې وانه وري .

: ددې لپاره چې غربیان تربوران ښکاره کړې او په مقابل کې یې خپل ځان سوچه مسلمان ښکاره کړې، نو دا فکر دې بیځایه دی ستا اسلام مونږ د غربیانو سره په تله کې نه اچوو، ستا اسلام مونږ د ابو بکر رضي الله عنه د زماني د مانعینو د زکات سره په تله کې اچوو ستا اسلام مونږ د تاتاریانو سره په تله کې اچوو ستا اسلام مونږ د دغه موجوده طاغوتي حاکمانو د اسلام سره په تله کې اچوو، د دوی نــــه تهٔ په څه کې کم یې بلکې په کفر او د اسلام په مخالفت کې ترې زیات یې، نو مانعین د زکات، تاتاریان او دغه موجوده سیکولر حاکمان چې په اجماع د امت مرتد دي، ته خو د دوی نه څه کم نه یې، ته خو په طریقه اولی مرتد یې، او که چیرې ستا اسلام د حقیقي اسلام سره په تله کې واچوو او نهه نوي فیصده ورسره برابر راشي او یو فیصد سپک شي نو هم ستا نظام نه اسلامي نشو ویلې تا ته مسلمان نشو ویلې بلکې جهاد

درسره واجب ګڼو، همدا راز اسلامي نظام د مسلمانانو سره په موالات بنا وي، ستا خِذلان خو ټولو مسلمانانو وکتلو لکه مخکې چې مو یادونه وکړه د غزې مسلمانان ستاسو په داسې باټو دوکه شوي وو نو تاسو ته یې څومره د مدد پیغامونه راولیږل تاسو چې فعال حکومت لرئ نړی ته د ماتې دعوه کوئ او ځانونه د دې زمانې اتلان معریفي کوئ اسباب او امکانات درسره دي کوم ځای کې تاسو د هغوی مدد ته لبیک ووایه ، بلکې د هماغه غزې ویجاړوونکې اصلي عاملین امریکا سره ستاسو فوځي او استخباراتي ناستې په قطر کې ترسره کیږي او د هغوی ډالري کڅوړو ته ساعتونه شمارئ، ۴۰سلنه د اسراییل تیل له ازربایجان څخه ورځي، خو نن سبا تاسې همدې د اسراییل لاس پوځي ازربایجان ته هم د دوستۍ غیږه ورخلاصه کړه ،دغه خذلان دی که موالات؟، دا خو ښکاره خبره ده چې دا د مسلمانانو سره خذلان دی، او داسې نور د اسلامي نظام ډیر اساسات دي دلته یې نه بیانوو بیا به موضوع ډیره اوږده شي خو اشارتاً دومره وایو چې د اسلامي نظام اساسات ستا په نظام کې نه لیدل کیږي او د کومو حدودو یا سزاګانو دعوه چې لرې نو دا خو ډیره بې ځایه ده او په اسلام کې هیڅ بیلګه نه لري پرته له تاتاریانو له زمانې، او د هغو یهودو عمل چې د تورات احکام یې تغیر کړي تبدیل کړي او نافذ کړي وو چې په اړه یې دا آیتونه الله تعالی راولیږل: وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ[المائدة: 44] او حکم یې عام شو او بیا وایې د دنیا سره هیڅ مشکل نشته خو یو مشکل شته چې دا اسلام دی او افغانان په اسلام معامله نه کوي او آیت یې ویلی دی، آیت خو باید چې یو کرت صحیح زده کړې بیا یې ووایې سیکولران هم ورپورې خاندي: إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الإِسْلاَمُ په ځای ان دین

عند الله الاسلام ویلی دی، چې دا یې لحن جلي کړې ده ، ددې امیرالمشـــرکین علمي مبلغ مو درته څو ، څو ځل په عملي شـــکل ښـودلی چې د یو حدیث عبارت هم صحیح نه شي لوستلاې؛ د داسـې غټ کاذب شـیخ الحدیث سره شـــاید مناســـب نه وي، افغانیت یې مخکې کړی دی وایې افغانان په اســـلام معامله نه کوي، ته سـوچـــــه دروغ وایې که داسـې دې ویلې وی چې سـوچه مســـلمان په اســـلام معامله نه کوي نو دا صـحیح وه خو د افغانیت ټکې دې کارولی دی نو په ډیرو هغو افغانانو دې خوله راښـــکلې چې د اســـلام په سر یې معامله کړې ده چې په سر کې یې همدا ته یې، او بیا ســـتا ملیشـــې دي چې د درســـتې نړۍ سره دې د اســـلام په سر معامله وکړه، او د ډالرو په مقابل کې دې اســـلام خرڅ کړ، بیا هغه افغانان چې د کفارو سره همکاران وو او ســـتا مرتدو ملیشـــو به د غلامانو په نوم وژل د هغوی دغه کړنو ته تهٔ څه ځواب لرې، نو د افغانیت ټکی ګټه نه کوي، او دا خبره دې هم دروغ ده چې د نړۍ سره د اســـلام په سر مشـکل لرې که مشـکل دې لرلې نو ســتا حال به داسـې وی ، د نړۍ کفارو به بیا له افغانســـتانه داسـې څلور لارې جوړه کړې وی ، نړۍ به بیا تاته داســـې ډالریزې کڅوړې رالیږلی ؟

نړۍ سره که دې د اســـلام په سر مشـــکل وی خو ورسره به په جګړه کې وی ، داسې په سرو قالینو به دې ورته لاس په نامه استقبال نه کولی.

ته خو د غلامانو غلام یې ته چیرته د بادار په مقابل کې انتن ورکوې ته خو د نړیوالې ســولې او ثبات لپاره کار کوې او دغه ذمه واري دې اخســـتې، د نړۍ کوم کافر سره ستا ســمدســتې جنګ شروع دی یا ورته آینده کې ګوت خنډنه لرې دا خو مونږ ته وښایه، هسې هوایې نړۍ سره وران یې، ویل کیږې یو سړې

جنگ نه کوو غتې غرگي ته يې لاس اچاوه، نو ته خو يو کرت د دې نړيوالو کفارو نه برائت وکړه دغـــــه ډالري کڅوړې خو بې ور رد کړه، دغه پروژې او موســـسې خو ور رد کړه، د دوی دغه جاسـوسـان خو د خپل ملک څخه وشړه، ډيپلوماټيکي اړيکې خو ورسره پرې کړه، نو دا چې په خوله کې دې د امريکې ډالري کڅوړه وي په لاس کې دې د هغوی کاســه وي په تن دې د هغوی جامې وي او بيا وايې چې زه خو ورسره وران يم، څوک چې د اســلام په سر د کافرانو سره وران وي، هغه بيا د ابراهيم عليه الســلام په نقش قدم ځي، د رســول الله صلى الله عليه وسلم په نقش قدم ځي چې تر اخره يې د کفارو نه د برائت او د جهاد لاره نيولې وه، **قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَآءُ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا حَتَّى تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ**، [سُورَةُ المُمتَحنَة : 4]

ژباړه: ستاسې لپاره د ابراهيم عليه السلام او د هغه د ملگرو (په کيسه) کښې يوه غوره نمونه ده، چې هغوی خپل قوم ته په ډاگه وويل: "موږ له تاسې او ستاسې له دغو معبودانو څخه چې د الله تعالی پر ځای يې بندگي کوئ، په ټينگه بېزار يوو. موږ ستاسې څخه منکر شوي يوو او زموږ او ستاسې تر منځ د تل لپاره دښمني او کينه ولويدله، تر څو پورې چې پر يوه الله ايمان رانه وړئ."

داسې برائت او عداوت پکار دی ، هسې لاپې نه دي چې وې کړې، نن درته په خوله کې يوه شوره درکړې بيا ورته د خپل عزت، ناموس، وينې، ايمان، اسلام هر څه نه ورتير يې او بيا د دوی تربيه شوي مليشه ياست چې د دوی نه

مخکې خپله وینه تویوئ، نو ډیر درواغجن ، مکرجن او دوکه باز یې، ته او ستا ډله صادقین نشئ کیدلی ځکه وینا مو د عمل سره موافقه نه ده، په ډیرو ځایونو کې مخالفه ده،

بیا کفارو سره خپل تعامل ته په اشاره وایې: د اسلام په دایره کې دننه چې څنګه معامله رسول الله صلی الله علیه وسلم کړې ده صحابه کرامو کړې ده معاهدې شوي دي معاملات شوي دي او اخر کې وایې خو د اسلام نه، نه ورته تیریږو.

نو همداسې اجمالي خبرو باندې مو دا څوکاله خپلې دا ګډې بیزې خطا ویستلې ، فقط د اسلام په چوکاټ کې خبره کوې خو نور د اسلام چوکاټ نه واضح کوې چې ایا اسلام د داسې حربي کفارو سره دغسې معاملاتو ته جواز ورکړی ؟

ایا اسلام د وطنیت په عقیده دغسې ایمان راوړل جایز ګرځولي ؟

ایا اسلام د بین الملل په نامه په کفري ملت کې یو مسلمان ته د شاملیدو ، د هغوی د شرائطو د منلو له هغوې څخه د رسمیت غوښتلو ، هغوی سره د مسلمانانو په خلاف په جنګ کې مرسته کولو ،او ترینه مرسته اخستلو ، هغوی سره د استخباراتي مالوماتو شریکولو ته جواز ورکړی ؟

ایا اسلام دغسې د حدود تغیر او تعطیل ته جواز ورکړی ؟

ایا اسلام دغسې د مشرکینو د ساتنې او د شرکي مراسمو د پالنې جواز ورکړی؟

ایا اسلام ستاسې نورو په لسګونو اسلام ماتونکو کړنو ته جواز ورکړی ؟

چرته یې ورکړی ؟

ته خو په دغه خپلو کړنو د قران او سنت څخه یو دلیل وړاندې کړه ؟

مونږ وایو په ډیرو ځایونو کې ته د اسلام نه تېر شوی یې، د رسول الله او د صحابه وو تعامل نه چې ته د خپل موالات لپاره استدلال کوې، نو دا استدلال دې باطل دی، ایا رسول الله صلی الله علیه وسلم تعامل د ټولو کفارو سره په یو وخت یو ځای کې داسې نه ماتېدونکې سوله کړې وه؟
د هغوی په قوانینو کې یې کوم قانون منلی و، د حربي کافر د امنیت ذمه واري یې په غاړه اخستې، د مسلمانانو نه یې کفار بچ کړي دي؟ نه دا هیڅ یې نه دي کړې د هغه تعامل واضح دی د ذمي کافرانو نه یې ټکس اخستی دی، د محاربو کافرانو سره یې جنګونه کړي ښځې او بچي یې ترې وینځې غلامان کړي دي او مؤقته صلح یې د یو جانب کفارو سره کړې نورو ته یې د اسلام، یا جزیې او یا د انکار په صورت کې د جنګ پیغامونه لیږلي دي او خپل جهاد یې جاري ساتلی دی د صحابه وسیرت هم په دې اړه روښانه دی چې هغوی د کفارو سره څنګه معامله کړې مرتدینو سره یې څه کړي دي تفصیلاتو ته نه ورځو خو ته د نبي علیه السلام او د صحابه وو په طرف هم نه یې ورغلی، د نړۍ د ټولو کفارو سره دې صلح، او مؤبده صلح، داسې صلح چې په بمونو هم نه ماتیږي، هیڅ ماتیدل نه مني، داسې صلح چې بیرته د کفارو نه د رحم او ترحم غوښتنه، د رسمیت غوښتنه، د پیسو غوښتنه، د تعلقاتو غوښتنه او په هر څه کې ورته په زارۍ اخته یاست نو دا خو صلح نه ده تسلیمي ده دا څنګه د رسول الله د صلح سره پرتله کوئ دا بـــه غټ ظلم او غټ درواغ وي چې ستاسو د شان سره مناسب دي د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د صحابه وو قول او عمل ترې بیزاره دی، هغوی چې کله مکه فتح کړه نو ابو سفیان او د هغه ملګرو ته یې معافي وکړه خو هغوی اسلام راوړو په خپل کفر یو

کس هم نه دی پاتې شوی یوسف علیه السلام خپلو ورونو ته د معافی اعلان وکړو خو هغوی ته چا هم کافر نه دي ویلي ګناه تري شوې وه د یوسف علیه السلام په حق کې تري تجاوز شوی و خو دا چې تاسو په دغه واقعو استدلال کوئ او د افغان زاړه حکومت غړي راغواړئ او پرته له اسلام او شرعي استتابې يې لـــه ځانه سره ملګري کوئ نو د دې نمونه خو په اسلام کې نشته، وفد د بزاخه چې مرتد شوي وو او بیا ابو بکر رضي الله عنه خوا ته د توبې لپاره راغلي وو لکه څنګه چې ابن بطال رحمه الله ویلي دي نو هغوی ته يې د توبې څنګه شرايط وويل، په هغه شرطونو کې دي چې تاسو به دا ګواهي کوئ چې ستاسو مړي جهنمیان دي، یعني کافر د دنیا نه تلي دي او تاسو به اسلحه نه ګرځوئ او ځیني نور شرطونه، خو تاسو يې د مخې سره ځان سره ستاسو په اصطلاح مجاهدينو(!) کې شمارئ د ارتداد احکام خو لرې خبره ده چې استتابه تري وکړئ او نوی اسلام پرې راوړئ څکه هغه کې خو بیا تاسو د پوښتنې لاندې راځئ چې تاسو کله اسلام راوړی سرچینه د ټولو یوه ده اصلي رهبري یوه ده چې سر يې امریکا ته وروتلی دی، هغوی هم کرايي جګړه ماران وو او تاسې هم یاست، نو له دې وجې د داسې خبرو نه ځان ساتئ، او بیا يې امریکې ته په اشاره ویلي دي چې زه شریعت نافذولو باندې مکلف یم دا زمونږ عقیده ده تا چې عام بمبار کوو په هغه ته ظالم نه وی خو زه چې د الله حکم نافذوم زه ظالم، دا يې د خبرې حاصل دی، د شریعت د نفاذ وضاحت خو يې مخکې وشو اوس دې یوې خبرې ته اشاره کوو چې امریکې ته دا خطاب د ممبر د لارې کوي او نېژدې څنګ کې چې ورسره کیني هغه کې نه وايې په دې کې هم د مسلمانانو غولولو هڅه کوي مونږ ورته وايو چې ستا خو ورسره ډېرې نېژدې

اړيکې دي په يو ميز ورسره ســـهار او بيګاه کينئ، هلته له نېژدې څخه ورته ځنګه داســې باتې نه ولې چې د لري نه غرګي ولې او د درواغو دعوې کوې کله د رسنيو د لارې د ډرون شکآيتونه کوئ چې فضا اشغال ده خو په ميز دا خبره نه وي او کله سره له دغه اقرار چې فضـــا اشـــغال ده د شرعي صـــلحې او عهد دعوې کوئ چې په اســـلام کې دا معاملات شـــوي دي خو بيرته يې په ډرون او نورو ګزارونو ماتيدل نه منئ ، دا ضد او نقيض خبرې چې تاسې کوئ د دې تر شا قوي پلان شـته چې تاسـو د امريكايانو سره منلى دى او ورځ تر بلې به ټولو مسلمانانو ته ستاسو اصلي څېره روښانه كيږي باذن الله.

بيـا يې د قوانينو پـه اړه اطمينـان وركړى دى چې "قوانين جوړوو، د اســـلام مطابق" دا يې خپل اعتراف دى چې تر اوسه يې د شريعت موافق قوانين نـــه دي جـاري كړي او هر اختريز پيغـام كې همـدا يـادونـه كوي دې لپـاره چې مسـلمانان دوكه كړي او په تمه كې وسـاتي چې كار شروع دى اخوندان قوانين جوړوي او افغانســتان به په شريعت ګل ګلزار كړي او د صـوفي آيزم عقيده به هر طرف خوره شي. او بيا ډير په تـاكيـد سره د دغه باتو په اخر كې وايې: دا مې تاسـو سره وعده ده چې د شريعت او د اسـلام څخه به يو قدم په قصـداً تېر نشـم" عجيبه خبره ده د اسـلام نه يو قدم نه تيريږم دا يې د خولې اقرار خو بل طرفته يې ټول اسلام پريښى دى، بلكې د اسلام په خلاف ودريدلى دى،ټول ښه قصداً او عمداً ودريدلي دي، همدې ځاى كې مونږ دا د اسلام په تعريف رانيسو نور اوږد تفصيلات نـــه كوو د اسلام تعريف چې د شريعت له نصوصو څخه مستنبط دى علماوو داسې خلاصه كړى دى: الإستسلام لله بالتوحيد والإنقياد له بالطاعة والبراءة من الشرـک و أهله. ژباړه: د الله تعالى توحيد منل، او د الله

تعالی حکم ته غاړه ايښـــودل او د شرک او مشرــکانو څخه بيزاري کول. د الله تعالی توحيد منل، يعني د توحيد ټول ډؤلونه يې منل، ته د تعريف په دې جز کې خلاف يې پوره دي نه دی منلی، د توحيد پوره منل د دې تقاضا کوي چې د زمکې الهه که قبرونه دي که زيارتونه او که ژوندي خلک دي د هغوی عبادت نه انکار وشي خو ته په کې اخته يې د زيارتونو او قبرونو شرک او دغه عقايد خو ستاسو واضحه دي، د ژوندو عبادت داسې کوئ چې د الله نه سوا د نړيوالو طاغوتي قوانينو اقرار او اعتراف مو کړی دی د هغوی کفري اصــول مو منلي دي د هغوی شرکي ډيموکراتيک اصول او ارکان مو منلي دي ،نو همدغه ته الله تعالی ارباب ويلي دي په دې آيت کې چې فرمايي: **اتَّخَذُوٓا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللهِ**[سُورَةُ التَّوبَة : 31]

ژباړه: دوی خپل عالمان او روحانيون لـه الله پرته خپل ارباب نيولي دي.

او په حديث د عدي بن حاتم کې هم دغو خلکو ته ارباب ويل شـوي دي چې د الله د قانون په مقابل کې يې د حل او حرمت تابعداري وشي، دغه د يهودو عمل وو چې تاسو ورسره پوره مشابهت لرئ او د نړيوالو ټولو تحريماتو پابندي کوئ سرغړونه ورڅخه نشـــئ کولی او هم په توحيد الاســماء والصــفات کې اختلاف لرئ، د سلفو صالحينو له عقيدې څخه په اسماوو صفاتو کې خلاف ياســت، همداســې د تعريف دويم جز دا و، چې د الله تعالی د احکامو منقاد او تابع کيدل، تاســو د الله تعالی ځومره احکام غورځولي دي د نبي عليه الســلام اقتداء مو په ډيری غټو او بنيادي مســايلو کې پريښــې ده او دريم جز يې د شرک او مشــرکانو نڅخه بيزاري ده نو تاسو کوم ځای کې د شرک او د مشــرکانو نـه بيزاري کړې ده تـاســو خو موالات کړي دي د هر کـافر، مرتـد، زنـديق،

کمونسټ او نورو سره، او هم د شرک په غټو غټو کارونو کې اخته یاست، نو تاسو او اسلام ډیر لرې دی دا خبره بیخي لرې ده چې وایې د اسلام نه به یو قدم تیر نشم مونږ وایو ته خو دې اول اسلام ثابت کړه بیا دغه خبره وکړه ستا او د اسلام تر منځ دومره جدایي ده لکه د مشـــرق او د مغرب تر منځ چې ده او په دغه شرکي، کفري او د اسلام خلاف کړنو چې ته او ستا ملیشه د اسلام نه جدا نشي۔ نو بیا په دنیا کې هیڅوک د اسلام نه جدا نشته بیا اختلاف هم د هیچا سره نشته لکه څنګه چې دا ستاسو یو اصل ګرځیدلی دی، معلومه شوه چې تاسو د مخکنې آیت بیخي مخالف او غټ کاذبان یاست.

مسلمانانو ورونو دا وو د هیبتوف د غولوونکو خبرو لنډه ارزونه چې مونږ پرې لنډ نظر واچوو د الله نه امید دی چې په حقیقت تاسو پوهه شوي یاست او هم په دې پوهه شوي یاست چې دا خلک غټ کاذبین او ظالمین دي نو هیڅ ډول میلان ورته جایز نه دی ځان ترې داسې وساتئ لکه د یو خنزیر نه چې انسان ځان ساتي، دوی هیڅکله ستاسو په خیر نه دي، د دوی سره همکاري د دین نه مرتد کیدل دي، دوی سره مینه د الله نه د لرې والي سبب دی او د دوی نظام ته اسلامي نوم ورکول د الله او رسول سره خیانت دی، نو پاڅئ او د دوی په خلاف د جهاد په مبارزه کې د اسلامي خلافت مجاهدینو سره یو ځای شئ او د اسلام حقیقي او ریښتوني نظام لپاره قیام وکړئ.

والله غالب على امره ولكن اكثر الناس لايعلمون، واخر دعونا ان الحمد لله رب العالمين.

